# ڼکۍ

هغه پښتو اسم چي په سرکي يې (ڼون)کارول سويدئ

ليکوال :حاجي نوراحمد (قران مل)

**دکتاب ځانګړني**

- دکتاب نوم :: ښکئ
- لیکوال ::حاجي نوراحمد (قران مل)
- کمپوز ::عبدالولي (نبي زاده)
- خپرندوی ::دکندها دپوهني ریاست
- دوهم ځل چاپ :: ۱۳۸۹لمریز کال
- اړیکي :: noorahmad_kakar@yahoo.co

# اهدا

دپښتوژبې دلرغوني تذکره نګارسليمان

((ماکو))روح ته وړاندي سوه.

په درښښت

ليکوال

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ۝١ ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝٢ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ۝٣

درونو لوستونکو ښې چاري درته وړاندي کوم ،هیله چي روغ یاست

هغه ژبه چي تراوس یې دنورونړیوالوژبو،او لسونواودهغودډیربنت په پرتله ډیرخودوینی په لحاظ لږ ښکاري پښتوده چي دنوروژبوپرته یې تر اوسه خپل کره والي ژوندۍ ساتلی اودنړۍ دژوندیوژبوڅخه شمیرل کیږي

دلته کیداي سي لوستونکو ته داپوښتنه ور پیداسي ؛کوم لاملونه دي چي تر اوسه ودې لرغوني ژبي ((پښتو ))ته دیا دښت ځلښت وربخښل سویدي دي ؟

ددې خبرې د سپيناوي لپاره موږ ځينې ډېر دلايل له ځانه سره لرو چې يو بنستيز لامل يې پخپله ددې ژبې په چوکاټ کښې دننه دهغې دځانګړتيا وو درلودل دي يو له دغو ځنګړتياو و څخه پدې ژبه پوري اړوند ددې ((پښتو )) ژبې دځنګړو عمده تورو درلودل دي چې په نورو ژبو کښې يا بيخي موجود نه دي او يا هم که موجود هم وي په پردي ډول په يوه يوه ژبه کښې يو يو توريځ تر سترګو کيږ ي اوپه پښتو ژبه کښې ددې ډير وتورو ډيرښت پردې خبرې ګواه بلل کيږ ي چې پښتو دعربي ، عبري او عبراني ژبو پرته داوروپاييکو ، هنديکو او فارسيکو دمورنۍ ژبې (اريک) خورد ه

اريک چې دزما ن په تيريدو يې خپل د چلښت له لاسه ورکړې لمړئ په سانسکريټ اوبيا په پورته يادو سو درې دوله ژبو اوښتي نن په نړواله کچه پر پورته دري ډوله ژبو چې پر نهو ښا خونو ويشل کيږ ي په خپل اصلي وړتيا او استعمال کښي نه ښکاري ، خو په پښتو سره تر دې سربيره چې دوختونو ، وختونو په تيريدو دګاونډيو فرهنګي ، بريدونو او دسمي په دننه کې له درباري

ګوانبونو او ترټنو سره مخ سوي بيا يې هم بنسټيز نورمونه ژوندي ساتلي او ويو ونکي يې داسي انګېرنه کوي لکه دا ژبه چي يې همداسي اوس دفرهنګ له اکاډميک چوکاټ څخه په يوه نړوال معيا ري انداز کښي را سربيره کړيو ي او په لوستنه يې ويارېږ ي ددې ژبې دا ځانګړتيا ددې لامل ده چي دا ژبه يي دنړيوالو نو ژبو په چوکاټ کښي سر لوړي کړي او داحترام وړيي ثابته کړي ده ، ځيني نړيوال هيوادونه يې هند ، روسيي او فرانسي په شان اړيستي چي ددې ژبي د پېژندني او تحقيقاتي انسټيټيټونه جوړ او دژوند پاته کېدلو او نړيوال معيار دساتني لپاره يي لاملونه په وجود راوړي خوددې ژبي په استعمال کښي ځينو معماو ، سيميز و لهجو د تفاوت او ليکدود پر سر ددې ژبې د ليکوالانو داختلاف تر څنګ يوه بله خبر ه لاهم تر اوسه نيمګړي پاته ده هغه دا چي تر اوسه داسي څوك نه دي توانيدلي چي په قاطعيت سره داسي اسم کلمه ، يا افغانۍ ټولني ته وړاندي کړي چي دنوموړي په سره کي (ڼ) کارول سويوي تر مخه تر ددې چي موږ ددې تور ي داستعمال پر سپيناوي رڼا واچو و راځو دهغه تو ري

پيژندني ته چي په پښتو ژبه کي په اصلي اوپه عربي اوعبري ژبه کښي دنيست ، خو په نورو ژبو کښي په نقلي ډول کارول کيږ ي دپښتو ژبي اصلي تور ي اته دي

چي عبارت له ((ټ،څ،ځ،ډ ،ړ،ږ ،ښ،ڼ))څخه دي پورته ټکي که موږ وگورو هغه توري دي چي په پښتو ژبه کښي موږ خامخا داسي توري لرو چي د نوموړ وتو ر استعمال دي په کښي راغلي وي لکه :ټ، ټينگار . څ ، څرك . ځ، ځان . ډ ، ډنډ . ړ، ږ ،ږيره .ښ ، سريښ . ڼ ، کوڼ .اوداسي نور

دپورته تور دثبوت لپاره چي کوم لغاتو نه زموږ او ستاسي په وړاندي کښيښوول سول يو هم داسي نه دي چي په پردۍ ژوبو پوري تړاو ولري بلکي هر تور ي يي دپښتو ځانکړي تور ئ دي چي په بله ژبه پو ر ي اړه نه لري د مخ تري چي موږ اوتاسي دسرليك پر خبره رڼا واچو و لاژمه ده د هغه دثبوت لپاره چي د(ڼ) پرته دپښتو ژبي پر نو او وه تور اجمالي رڼا واچو و

دذ کر سو لغاتو دپلي کيد و څخه چي بيرته دپښتو ژبي دځانکړي تور و پېژندني ته راسو ددې خبري دپيژندني لپاره اړيږ و دا په اثبات ورسو و چي څنګه کېداي سي دعبري او عربي ژبو پرته دي نوري ژبي دپښتو ژبي متاثر ي او يا دي هم ددې دمشري خور (اريك) ژبي له او لادي څخه وي ددې تورو څخه وي ددې تورو څخه لمړئ د (ټ) تورئ تر څيړني لاندي نيسو

## ټ

(ټ) دپښتو په ځانګړي تورو کښي د ((الفبا)) پر تر تيب لومړئ مقام لري داتور ي په فارسي ، عربي ، او عبراني کښي نه سته په پښتو کښي موږ ددې توري داستعمال لپاره

تر نهايت زيات کلمي لغاتونه او اصطلاح ګاني لرو دا تور ئ دپښتو ژبي دځانګړو لغاتو نو په سر ، منځ او پاي درو سر کښي داستعمال وړ او کارنده تور ي لر ي چي دبيلګي دپاره دلته راوړو لکه :

دلغـت پـه سـر کـي : ټوټکـه ، ټگـي ، ټينگـار :
دلغت په منځ کښي : پټه ، پټو ، پېټي ، پټکه اوپټکۍ

: دلغت په پاي کښي : پټ ، گوټ

داتـورئ چـي پـه پښـتو کـي نـورو رانـه ثبوتونـه لري پردې خبره گـواه دې چـي ددې ((پښـتو)) ژبـي ځـانگړي تورئ دي په پورته درو يا دو سو و ژبو کـي ځـاى لـري ، خـو د اريك څخه په زوکړو ژبو کي چي عبارت دي له (انگيسـي ، جرمني ، پتگالي، ايټالوي ، فرانسوي) څخـه د ي زيـات استعمال لري کـه دټولـو ژبـو پـر بيلگيـزو اړخـو نـو ږ غـېږ و زياتي خيرېني تـه اړتيـا پيـداکوو ، خـو ددې خبـري دثبـوت لپاره به يـوازي پـه د ي اسـاس چـي موجـوده نړيوالـه رسـمي ژبــه انگليســي ده دهمــدي انگليســي ژبــي څــو مثالونــه دقناعت په دود دلته راولو

: بيلگي په توگه

Doctor, director,   smart, Advertisement

چي معني گاني يې روغندوى ، مخکښ ، چالاک ،
او تجارتي اعلان دي او داسي نو ر مو ډرنيز ه لغاتونه هم
موجود دي

## څ

پـه پښــتو ځـانګړوو تــورو کښـــي داســتعمال وړ او
عيني دوهم تـورئ چي پـه خپـل استعمال سره يـي دپښـتو
دځانګړو تور و په چوکاټ کښي دوهم ځاى نيولي دي هغـه
د(څ توري دي داتور ي د(ڼ) څخه پر ته دپښتو نورو ځـانګړو
اوو تور غوندي دلغت ، کليمي يـا اسم پـه درو سـرو حـالاتو
کښي داستعمال وړ دي مثلاً

په سر کښي : څپر ، څوك، څر ، څرګند

په منځ کښي : نڅا ، پڅه ، پوڅه ، پوڅکي

په پاي کښي : پڅ ، لڅ ، کڅ ،

داتورئ تر اوسه پوري مـا يـواز ي تـر پښــتو سـر
بيــره پــه روســي ژبــه کــي ليــدلي دي يــو دروســي ژبــي

اصطلاحاتو څخه ده (( څکولکه )) ده چې معني يې ده (( څومره )) خو دپخواني چکسواکيې ديو سمي يا يوه ښار نامه (( سيبر ينيځا )) ته که ځير شو نو ويلای سو چې په سريي ژبه کښي به هم داده ((ځ)) تورئ موجود وي

## ځ

(ځ) دپښتو ژبي ځانګړۍ تورئ دي چې ددهمدي ژبي په چو کاټ کښي داستعمال له رويه در يم ځای لر ي

داتورئ هم دروسي پرته په نور و ژبو کښي نه ليدل کيږ ي په پښتو کښي ډير راڼه مثالونه لري داتورئ هم دلغت ، اسم ، يا کليمي په سر ، منځ او ددوی په پای کي ليکل کيږ ي

دبيلګي په ډول

د کليمي په سر کي :ځيرك، ځم . ځان ، ځين

د کليمي په منځ کي : رنځور ، پنځونه ، پنځه

د کليمي په پای کي : ورځ ، اوريځ ، ږومنځ

# ډ

تـر (ځ) وروسـتـه پـه پښـتـو ژبـه کـې د ځـانګړي مقـام ښتن د (ډ) توری دی چي په فارسي ، عربي او عبري پرته په نورو اروپا ټیکو ژبو لکه ( انګلیسي ، الماني ، پرتګالي ، ایټالوي ، فرانسوي ) کي موجود دې چي موږ یې دلته بیا دموضوع دلنډون لپاره د یادو سو ژبو په استاذي توب په انګلیسي کي بیلګه پلټلاي سو

**Dirty, divide, diamond**

مو ږ وینو چي درو سرو لغاتو نو پـه لړي کـي د (ډ) تور ي کارول سوي دي (**d**)

چي دپورته انګلیسي لغاتو نو په پښتو معني ده

چټل ، ویش او الماس

په پښتو کي داتورئ چي داستعمال له وریه څلورم ځای لري هم دپښتو ژبي دهغو تور یو څخه شمیرل کیږ ي چيپښتو ژبي ته یي ځانګړي لر غنتیا وربخښلي ده

داتور ئ هم د (ڼ)څخه پرته دپښتو ژبي نور و اوو تـور پـه شـان د کلیمـو پـه سـر ، مـنځ او پـاي کښـي

داستعمال قابلیت لري پاخه سندونه یې موجود دي دلته یې یوازې او یوازې دمعاصر استعمال بیلګې وړاندې کولای سو

د کلیمې په سر کې : ډول، ډَول ، ډم ، ډمامه ، ډیر

په منځ کې : کونډه ، سپیر کونډکه ، برنډه ، بینډۍ

په پای کې : ډنډ ، رنډ ، ګوډ ، ارهډ ،هډ

ډ

(ړ) چې دپښتو ژبې دځانګړو تو ر و په ټولواله کښې هم دپښتو دځانګړو تور و څخه ده په پخپل مخرج او ځا ي کښې داستعال ځانګړي مقام لري هم د (ډ) په شان په عربي ، فارسي ، عبري ژبو کښې نه تر ستر ګو کیږ ي ، خو تر پښتو سر بیره یې په ارو پاتیکو ژبو کې استعمال ډیر تر

سترگو کیږ ي د نو موږو ژبو له ټلو الي ځخه یو ځل بیا انگلیسي ژبي یو ځو لغات شاهدانولاي سو البته دابه د لندني ژبنۍ لهجي د استعمال توکي وي

**Morning, hour**

خو کېدا ي سي چي دځینو لغاتو په مغایر ت په امریکایې ژبني لهجه کښي داتوري د (ړ) پر ځای په (ر) واوړي په پښتو ژبه کښي یي موږ داستعمال خورا ښه او بې ساري بیلگي لرو دا جوته وي چي پښتو ددې توري په بي شك استعمال سر ه له سره ځخه راپدي خو ا خپلوا که ژبه ده :

د (ړ) توریځ دلغت په سرکي : ړوند ،ړنده ، ړاسپه

د کلیمي په منځ کي : مړوند ، مړوښي ، مېړونه

دلغت په پاي کي : موړ ، جوړ ، سوړ ، پروړ

(ړ) د پښتو ژبي له تو ر و څخه يو داسي توري دي چي بېله روسي ژبي په نو رو ژبو کښي نسته يوازي پوري تړاو لري داتو ري داتوري چي د ژبي په مخرج کښي خوارا زيږ اداکيږ ي دسيمي پښتانه يي د (گ) ځيني په پښتانه يي د ( ژ) او ډير پښتانه چي يو له دوی څخه يي کند هار او هغه ته د څير مه پر تو سيمو پښتانه دي چي دوی يي په خپل مخرج ((ړ )) کښي اداکوي

روسان دي توري په هروف کښي دپښتو په شان غني لغاتونه لر ي چي يو يي د هغو ي څخه د (ړ ) توري داد ( ړ وويه ) لغت دي چي په پښتو کښي دا روسي لغت ژوند په معني دي او يا لکه (( ړ اينبکه )) چي پښتو معني ده (( راځه چي ځو )) داتو ر ي هم يو دهغو پښتنو بنستيز و تورو څخه دي دلغت يا کليمي په سر کي او پاي کښي کارول کيږ ي دمثال په ډول

دکليمي په سر کښي : ړ مونځ ، ړ يره ، ړ وب ،

په منځ کښي : کږتیا ، کږنه ، کږه ، گرویږنه

په پاي کښي : کوم، دروږ ، زیږ ، ایږ

## ښ

د (ښ) د پښتو ژبي په تورو کښي یو لـه هغـو تـور و څخه دي چي داهم د (ځ) او (ږ) په شـان یـو ازي پـه روسـي ژبي کښي موجود دي لکه (( ریښـکه )) چـي معنـي يې ده (( زمابدن )) یا لکه (( په نیمایش )) چي معني د ((نه پو هیـدلو )) پـه مفهـوم ده خـو داتـوري هـم د (ږ ) پـه شـان پـه نـوري او رپـاتیکو ( انگلیسـي ، فرانسـوي ، ایتـالوي ، پـر تگـالي ، جرمني ، ) هندیکو ( پنجابي ، اردو ، بلـوڅي ) فارسـیکو ( پهلوي ، ساساني و ساماني ) ژبو کښي نسته ددې داتوري لکه څنگه چي مخکي ورته اشاره ورتـه وشـوه پـر پښـتو سر بیره په روسي ژبه کښي خورا زیات کارول کیـږي لکـه چـي زه ( **10_ 15** ) کلن وم او دا هغه وخت وه چـي لـه افغانسـتان څخه وتل زموږ کور چي داوخت دکندهار په نو ښار کـي وه او د نو ي ښار دچوك پر سـیمه چـي پـر هغـه ځـای اوس یـو د تیلـو پمـپ او بـل د ( یـس ) پـر نیچـر ( تـر کـاني ) موجـوده ده

دلتـه بـه ددې سـيمي ځوانـانو دروسـانو لـه کـاروانونو څخـه چـي بيلـه ناغـه بـه يـو ه نـه بلـه ورځ تـوري غونـډي څخـه دکندهار دهوا ي ميدان پر لور راتلل اودي به خورکي اولـو ژيستکي مواد ځني رانيول داسي ډير لغاتونه ما پـه خبرو ځيني اوريدل چي پـه هغـو ي کښـي بـه د ( ښ ) لغـت کـارول سـوي وه لکـه ده ( ورونښ ) اسـم چـي پـه روسـيه کـي د يـو سـيمي نـوم دي يـا لکـه ( ريښـکه ) داتـوري هـم د ( ښ) څخـه پورتـه د نـورو تـورو پـه شـان تـر اوسـه رسـمي چوکـاټ کـي د لغـت يـا کليمـي پـه سـر ، مـنځ او پـه پـاي کـي ليکـل او استعماليږ ي چي د بيلکي يي دلته په لاندي ډول لوستلاي سـو د اسـم يـا کليمـي پـه سـر کښـي: ښـور ، ښنگښـر ، ښورانده ، ښيگنه

د لغت په مينځ کښي : ريښه ، ايښمه او ښير

د لغت په پاي کي : ښورښ ، سريښ ، سراښ

ړ

تر ښه ورسته په پښتو کښي یو بل تور ي موجود دي چي له پښتو ژبي له اصلي او اساسي تور و څخه شمیرل کیږ ي داتوري له پښتو پر ته بل په نور و ژبو کي نشته په هغه پښتو سیمو کي به موجود وه چي تر اوسه په هغو ساحو کښي ددې اسم په اړه داسي علامي خیړنه نوي سوي چي دااسم راڅر ګند کړي په ورځیني جریان کښي د ښوونځي زده کونکو پر له پسي پښتو نو ته اړه کړم چي ددې تور و په پلټنه پسي متهي را ونغاړم په دي اړه به د محتر م متقاعد ځارنوال محمد منګل خان د ځانګړي همکاري څخه په مننه یادونه وکړم چي ددې توري په پلټنه کښي یي بشپړه مرسته راسر کړي ده او تر دي سربیره یي ده ( کجنې ) دلغت په پورته اداینه کښي خپل معلومات نه دي دریغولي

داتوري چي تر اوسه په پښتو اصطلاحاتو کي په اعلمي لحاظ په کوم سر کي د کومي کلیمي یا اصطلاح نوو کارول سوي . خو په منځ او پاي کښي یي ډیر مثالو نه لرو چي دلته به یي یو څو بیلګي تر لو ستني لاندي ونیسو

په منځ کښې : ( منه ) چې په فارسي يې سيب بولي ( کنه ) هغه ښځه چې په غوږ ځه نه اور ي او داسي نور يا د د اسم په پای کښې کوڼ هغه څوك چې په غو ږ نه اوري يا لکه بهاڼ ، گجڼ چې دلته ددوا ړو لغاتو نو په پای کې د نه ڼ توري کارول سوي دي ځيني ورونو ته به داسوال پيداسي چې نو گجڼ څه معني ؟

دپښتو يو اصلي ټبر ناصر ان (( کنځړ )) و برستن ته وايي په فارسي کې هغه ته تلتك ويل کيږ ي

عمومًا يي خلگ د يخني پر وخت پر ځانونو اچوي داسم تر ناصروسر بيره په سليمان خيلو او اندړو کښې هم سته البته له دوی څخه يي هغه کسان کاروي چې تر اوسه يي لاښاري ژوند ته نه ده مخ کړي داتوري که ناصر ان يي د کنځړ په نامه کاروي خو دږ وب دسيمي خلگ يي بيا په لږ تر غير په گجڼ سر ه کاروي چې د اسم په جريان کې نون ورڅخه غورځوي او ( ځ ) يي په جوم اړه وي چې ډير داسي نو ر مثالونه په پښتو کښې لورو په اورد و کښې هم ځيني داسي اصطلاحات سته چې داتوري دي په کښې کارول

سویوي خو اصلاً هغه اورد و کښي ((ښوڼ)) نه بلکه د (( نون )) مفهوم لري دبیلکي په ډول (پاڼي) چي په پښتو کي په اوبو ته جمعه کیږي .

خو د پاڼي لغت د ښوڼ په لرلو سره په اوردو کښي کوم تاریخي اره نه لري . د زیات استعمال له رویه په اوردو کښي د دې لغت یا اسم (( نون )) په ((ښوڼ )) او ښتي دي چي موږ یې د (( پاني )) پر ځای په (( پاڼي )) تلفظ کوو تاسي لاندي کاکړي غاړه ولولي نن مي داسي ځای ته وړي چي اوبو ته واي پاڼي کیدایسي نور داسي ډیري غاړي موجودي وي

اصلي خبري

دوه سواله موجودي چي هغه تراوسه په پښتو اصطلاحاتو اونوموکښي داسي اسم یا کلیمه نه ده موجوده په سرکښي یې د (ښوڼ) توري یاحرف کارول سویوي؟ بله خبره داده چي مو جوده وي نو کوم توري دي ؟ د لومړي سوال جواب کښي داسي ویلاي سو چي تر اوسه پوري پښتوي اکاډمیك پوهان په قاطعیت سره پر دي ندي

تو انیدلي چي ددې اسم پر پیداکولو دي بر لاسي سي او د دوهم سوال په غبر گوڼ کښي ویلاي سو چي تر اوسه پوري په اکاډمیك ډول داسي تور ي نسته چي هغه دي په سر کي ( ښوڼ) کارول سویوي ددې خبري سپیناوي لپاره مي داسي قناعت تر اوسه نه وه پیداکړي کله چي دد ي اسم په پیداکولو بر لاسي سو م د زیاتي پلټني او معلو مولو لپاره دي خبري ته اړسم چي باید تر یو اندازي له فرهنگي دوستانو سره ددې ټکي په اړه خبر ورکوم ددې پښتیدونکو له جملي مي د کندهار په میرویس نیکه لیسه کي زما گران زده کونکي محمد ناصر (( نورزي )) ثخه پوښتنه وکړه هغه راته وویل

تر اوسه مي معلم صاحب :

داسي اسم نه دي اریدلي . خو ځیني خلگ وایي په جلاله باد کښي د رڼا اسم (ر ) په (ڼ) سره کاروي او د رڼا پر ځای ( ښا ) وایي د جواب زړه نیونکي وه خو قناعت بخښونکي نه وه

دي اسم پسي زياته هڅه شوي ده تر اوسه چا نه دي موندلي بيا مي ورته وويل چي د (( ښځا )) په اړه څه نظر لري ايا رښتيا په جلاله باد کښي (( رښا )) په (( ښځا )) ويل کيږي هغه راته وويل (( نه بلکل نه )) داخبره ځوان شاعر ښاغلي فضل هادي (( فضليار )) هم راته وکړه بيا هغه وه چي ددې اسم يوه کافي مي (؟) درانه استاد صميم صاحب ته ورکړه داچي دابه کوم اسم وي په راتلو نکو ليکو کښي يي لولو تر دي سربيره چي زما سره د درنو ملکورو هم ږغ کړيده او يا يي دنه زغم پر بنسټ نټه کړيده ورځني ممنون يم چي دي تائيد او نکاري زه ددې اسم وه سپړ لو ته اړيستئ يم بيا يد ياد ولرم چي د رانه سپن ږيري عالم او فرهنگي شخصيت ځارنوال محمد منگل خان (( کاکړ)) زياتي همکاري منند وي يم چي ددې اسم په تحقيق کي د (( ژوب )) او ((داي چوفان )) په سيمو کي د استعمال له کبله يي د د غوځينو تورو په رايادولو سره چي په هغوي کښي

د پښتو اصلي توري په ځانگړي ډول د (( ړ ، ښ، ڼ )) د تورو په استعمال رامعلومو نه کښي کومك کړي دي سره تر ځنگ دا زما د عاقيدي له وروړجمشيد ناصري

څخه هم ځینو اصطلاحاتو په رایادولو سره ممنون یم ویل کیږي چي لنډۍ په شعر کي هغه فورم دي چي بیله پښتو څخه د نورو ژبو په تر کیبو نو کي نه تر ستر گو کیږي او ځانکړ نه یي داده چي تر ډیره یي شاعر نه دي معلوم ، د نارینو په پرتله دښځینو احساسات زیات ځر گندیږي نو له دي امله یي زیاتي ویونکي هم ښځینه دي ولو که په ځینو مواردو کي یي نارینه هم وایي دساري په ډول دامیر شیر اعلي خان هغه لنډۍ چي نوموړي د خپل هیواد د پر دیسي په حالت کي ویلي دي او داسي نور چي عمدتاً یي اړخونه پر حماسي ،اجتماعي ، بیلتوني ، خوشي او ناامیدي پر وخت ویلي دي

په دي لنډۍ کي تر خپل خالص مطلب پوري سر بیره د پښتو ژبي ډیر ساده او پخواني دودونه هم یادول سویدي او تر دي لالوړ د پښتو ژبي اصلي توري لاندي کش کړل سویدي موږ یي لیدلاي سو لکه :

د مجاهدو ډلي راغلي

پر سرو روسانو دهاوان کوي وارونه

چي دلته ددې لنډۍ د لمړي نیم بیتي په منځ کښي د (ډلو) مجموعي اسم او معني یي ګروپونه یا جوفي دي دلته موږ دډلو په اسم کښي د (ډ) توري وینو چي کارول سویدي

یالکه :

دشهید موري بختوري

ستا دځیګر غوښي دخدای دیدار کوینه

چي دلته په دوهم نیم بیتي کي د (غوښي) په اسم کي د (ښ) د توري کارونه راځي او داسي نوري .... د لنډۍو تر چوکاټ سر بیره نوروداسي لنډۍو ته ورته شعرونه سته چي تر عمومیت سر بیره په ځانګړو پښتني ټبرونو پوري اړه لکه ناصري هوتاکي نا ر ي او کاکړي غاړي چي په لاندي غاړه کي موږ د (ټ) توري د (پټي) په لغت کي وینو

سپین ډاټسن پټي پټي

چمن تي يووړي سپيني خولي

کـه د (ښ) تـر تـوري بيـر تـه د (څ) تـور ي تـه راواوړ و نوپه لاندي غاړه کي وينو

د لنډو د مور نازکي
لنډو مه وله ، له مځکي

چـي د دې لنـډۍ مځکـي پـه اسـم کـي د (ځ) تـوري کاروال سويدي راځو د (ځ) استعمالو تـه چي نـه يـواجي پـه اسمي ډول بلکي ، په فعلي او ضميري ډول هم کـاورل کيـږ ي لکه په پورته لنډۍ کي ډ ((لنډو )) تر اسم يا نـوم سـر بيـره په پښتو کي د ځو پـه متصـلو يـا مـو ښـتي ضـميرونو کـي د استعمال وردي دادي تـر ((ږ )) وروسـتـه د ـ((ښ)) تـوري دي چي تر لنډۍ ليکني لاندي يي نيسو

لکه لوړ درشل احمد شابابا چي وايي !
د ډهلي تخت حيرومه چي رایاد کړم
زما د ښکلي پښتو نخوا دغروسرونه

په دي پورته بيت کي د ((ښـکلي)) او پښـتـونخو ا پـه اسـمانونو کـي د ((ښ)) تـوري کـارول سـويدي خبـره چـي ((ڼ)) ته ودريده نو داتـوري خـو هـم پـه پښـتني شـعريز جهـان کي نغښتي دي

خو موږ دلته اصلي مطلب پلي کوو چي ايا داتور ي د يو اسم په سر کي نستـه ؟؟

بلـي ، هـو سـتـه يـو ه پښـتـو لنـډۍ او دوی کـا کړي غاړي دي چـي تـر اوسـه لانـه دي راجسـتر سـوي او يـوازي د ږوب خانوزي او داي جوپان پـه سيمو کـي مروجي دي چـي په هغو کي داسي پښتو اسمونه ستـه چي دهغه په سر کښـي دي د (ڼوڼ ) توري کارول سويوي چي لـو مړي مـوږ تـه هغـه پښـتو لنډۍ تر ځيړي لاندي نيسو چي په هغه کښـي ((ڼـوڼ)) موجود وي لکه

((ڼکـئ )) ليا خاو دي پر وريږم
الله سي ځوان سي د لښکرتر مخ به ځينه

داسم چي لومړي حرف يي په مکسور ډول يـاديږي ( ٍ ) په ادا ينه ويل کيږي او پاته دوهم توري چي (ک ) دي دديِ

اسم دریم توري (ي) سره د زور ( ٍ ) په حرکت کارول کیږي چې په دي استعمال سره یې (ک) زور لرونکي او (ئ) په همزه داره (ئ) ساکنه کیږي اوپه پایله کي (ڼکۍ) یو نارینه نوم ځیني جوړیږي راځي چې د دې اسم اصلیت ځانته معلوم کړو

۱ موږ وینو چې د (ڼکۍ) صطلاح خپله یو اسم دي اوله استعمال څخه داسي معلومیږي چې ((ڼکۍ)) دي یو د نارینه اسم وي ځکه چې د پښتو ښځینه اسمونه په پاي کي (( ا ،ح،ع،ه،ي )) کارول سوي حال داچي د ((ڼکۍ))په اسم کښي پورته پنځو تور کي یو هم نه دي کارول سوي او داتوري په پښتو اصلي تورو کي شمیرل کیږي چې د پښتو هر نارینه نوم که موږ وگورو دهغه په پاي کي هم اصلي توري کارول سویوي نو ویلاي سو چې ((ڼکۍ)) یو نارینه نوم دي

۲ دلنډۍ په لمړي نیم بیتي کي راغلي دي چې ((ڼکۍ)) لیا خام دي پروېږېږم )) دلته له ورایه ښکاري چې

((ڼکۍ)) یو اوم او نا بالغ هلک دي که چیري دانوم ښځینه واي نو د ((لیاخام دي )) په عوض لیاخام ده )) کارول کیدله او ولنډۍ سیلابي اړخ یي ېې توزانه کاوه موږ او تاسي انسانان یا تنګي ځوان اویا ((مراحق)) په نامه یادو و ، نو څر ګندیږي چي ڼکۍ وهغه هلک ته په پشتو کي ویل کیږي چي مړاني نه وي وهلي

۳ ددې تنکي توب د دوري د ثبولو لپاره دذکر سوي لنډۍ پاته نیم بیتي ښه تائید بللاي سو لکه چي وايي : (( سي خدای یي ځوان کي دلښکر تر مخ به ځینه )) چي په عامه پښتو یي موږ داسي لولو ((چي خدای یي ځوان کړي د لښکر تر مخ به ځینه ))

په اصلي شکل کښي چي ددې نیم بیتي په سر کښي د (( سي )) د صطلاح کارونه راغلي ده داده هغي سیمي د پښتنو لهجوي کارونه ده لکه چي ځیني نو ر خلګ د کاکړو او ناصرو غوندي داکلمه د (( چي )) پر ځای کاروي او ددې پر ځای چي دوی ووایي (( چي داکار وسي )) دوی وایي (( سي دا کار وسي )) په پښتني لوستنه کي کوم تو

پیر نه راولي صرف توپیر دادي چي د (( چي )) اصطلاح په عامه پښتو او د (( سي )) اصطلاح په ځانګړي سمیز لهجه پوري اړه لري

تر دي خبري ورسته چي (( چي ښکئ لیا خام دي )) دهم دي نیم بیتي په دوهم پړاو کښي د (( پرویرړم )) نیمګړي اصطلاحي جمله ده چي د ((ویریرم )) کلمه په کښي بیان سویده وېررږ م اصلاً په عامه پښتو کي ((ویربړم )) کلمه ده چي یو متصل ضمیر جوړوي چي په کندهاری اصطلاح کي موږ وایو چي (( بیربړم )) خو د ږوب د کاکړانو لهجه کښه موږ وګورو هغو اکثره په موښتو (متصلو ) ضمیرونو کښي منځني (ي) نه راولي نو یوازي داچي په متصلو ضمیرونو نه کاروي د بیلګي په ډول (( بیربړم )) په (( بېرړم)) اویې او ددې ورستي توري ((میم)) تر مخه یي (( ي )) ځیني غورځولي وي یا لکه (( تېربړم )) په تېررړم )) وایې او په فعل کښي لکه (( خوږیږم )) چي دوی یې په ((خوږږي)) وایې داسي نور

ددې لنډۍ تر تحليل او تجزيې وروسته موږ دالنډۍ چي وايي

ښکې لـيـــاخـــام دئ پر وېـرېږم
الله سي ځوان سي دلښکر ترمخ به ځينه

په روان ډول داسي وايو :

(ښکې) لاخام دي پر بېرېږم

چي خداى يې ځوان کړي د لښکر تر مخ به ځينه

اوس راځــو ددې پښـــتو لنــډۍ تــر څېړنـــي وروسـتـه هغـو دوونارا جسـتر سـوو کـاکړيو غـاړو تـه چـي د ((ښکې)) اسم په کښې کارول سوي

(( ښکې)) ډير ستړي ستومان دي
کـــــور يي لـــوړ پـه خـــراســان دي

د افغانسـتـان تـر مخـه ددې سـيمي نـوم خراسـان ؤ کله چي احمد شـابابا پـردي سـيمه واکمـن سـو نـو يـې ددې سيمي نوم له خراسانه په افغانستان بدل کړ دا چه علت يـي

څه وو ؟ ؟ داخبر موږ د تاريخي محقيقينو ته سپارو خو بيا د ايران يوه بر خه اوسني مشهد هم په دي نامه ياد سو چي اوس هم په ځينو مواردو کښي د ايرانيان دغه سيمه دخراسان په نوم ، خو بل بر خراسان هم سته چي هغه د روب په سيمه کي د جنوبي پلي يا په خپله روب ځيني پښتانه دکاکړو د خراسان په نامه يادوي چي البته پر همدي سيمه د لالت کوي . خو ما تر اسه نژدي نه دي ليدلي

تر دي سر بيره سيمي ته د خراسان اصلاً د کاکړو د خراسان په نامه وريادول سوي چي د انګليسي امپراطوري پروخت آزاده سيمه وه لکه دديې سيمي يو شاعر چي په خپل يو شعر کي وايې

پښتون لوري ته مېشته دي کاکړان
آزاد ځاى دي د کاکړ و خراسان

په لوړ کاکړي غاړه کي چي (( ښکئ )) تور ي کارول سويدي داسي ښکاري چي (( ښکئ )) له کوره ليري کوم بل ځاى په څه کار بوخت دي چي په روز مره ډول له کوره تر هغه ټاکلي ځايه ځي او خپل هد ف پر مخ بياي داچي دي

ډیر ستري ستومان کېږي نو ښکاريږي چي داثبوتيږي چي ((ښکئ)) شپو نکي دي او خپله رمه پيايي لکه په لاندي کاکړي غاړه کي چي يې لولو

((ښکئ))خپل مر غومان بيايي
ټوله ورځ يي پر دښت پيايي

چي په دي سر هغه ټوله ورځ له کوره څخه لېري په يوه دښته کښي خپل مرغومان پيايي او يا يې د څړلپاره هلته بيايي ((ښکئ)) هلته پاي ته کيږي اوتر غرمي وروسته د ماښام په خو کي خپل کور ته راځي دلته موږ دد داپاته والي په لاندي غاړه سره منلاي سو ک

((ښکئ)) نه راځي کهله ((کاله)) ته
سيني پوځي خوري هلته

په پورته غاړه کښي د کهله کارول سويدي چي په پښتو کښي دالغت اوي هم مروج دي چي دکاله ، ځيني پښتانه يي په کهله ، او ځيني د کور په معني سره يادوي ولوکه په عربي ليکنه ا و لهجه کي دالغت د عربي (ح) په نوشته کولو سره چي په (( کحل )) اداکيږي درانجو معني

ورکوي اوپاته سوله د ((پوخي)) خبره دایوه دښتي ګیاه ده چي ځیني پښتانه یې په ((پوڅکي)) سره یادوی او ځیني په غاړه کښي په یاد سوي نامه ((پوخي)) سره یادوي

د ((ښکـئ)) تر نوم سربیره چي موږوینو په دې کاکړیو غاړه کي ((کهله،پوخي ،خوري ، هلته ، اوتهوله))چي کهله اوپوڅه د پښتو ځانګړي نومونه ،(( خوري )) یي له ((فعل سر ماښتئ)) متصل ضمیراو ((هلته)) اشاري مکاني ضمیر اود ((تهوله)) کارونه یي پر پښتو ځانګړو اصطلاحاتواوکارونو دلالت کوي ددې شاهدي ورکوي چي دي غاړه کي داکارونه خپله ددې ژبي زیږندهاود ((ښکئ)) دهمدي ژبي یو پخوانئ نوم دئ څګنداسم او کرتې هغه نوم دئ چي په سرکي یې (ښوڼ) کارول سویدي

په مینه او درنښت

دزړ وړانګي مجلې مدیر

نوراحمد ((قرانمل))

۱۳۸۴لمریز کآل لړم دروژي ۲۸ دماښام اذان

